

دا بـــاغ د عـــامـو خلـكو د گټې
او ارام لـه پـاره جـوړ شـوی دی .
دلتــه چې څوک مسـافـر راشـي ،
مـوږ يې خـدمت کوو. د دې خدمت
پـه بـدل کې حکومت موږ ته ماليه
معاف کړې ده . " پاچا په فکر کې شو ، چې که د دې باغ د يوه انار له
اوبو څخه گيلاس ډکېږي نو د باغوان خو به يې ډېره گـټه وي ؛ په دې
باغ بايد ماليه ولگول شي .

څه شيبه وروسته پاچا د تلو اراده وکړه . له باغوان څخه يې يو
گيلاس شربت بيا وغوښت . باغوان بيا يو انار او گيلاس راووړ . پاچا
انار وزبېښه . خو گيلاس نيمايي هم ډك نه شو . د باغوان رنگ زېړ
وتښتېد . پاچا ترې پوښتنه وکړه : " دا ولې ؟ " باغوان ورته وويل : "
صاحبه ، زه له څلوېښتو کالو راهيسې په دې باغ کې د مسافرو خدمت
کوم . له يوه انار څخه مدام يو گيلاس اوبه وځي ؛ هېڅکله مې دوهم
انار نه دی مات کړی. معلومېږي چې د پاچا په نيت کې څه فرق راغلی
او اثر يې پر انارو پرېوتی دی .

" پاچا په خپل نيت پښېمانه شو . د ماليې فکر يې له ذهن څخه
وايست . باغوان ته يې ډاډ گيرنه ورکړه او په خپله مخه ولاړ.

# ابوبکر صدیق رضي الله عنه

د حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه نوم عبدالله و . په ابوبکر مشهور و هغه له حضرت محمد صلی الله علیه وسلم څخه دوه کاله کشر و . دواړه له کوچنیوالي څخه خواږه دوستان وو . کله چې حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ته خدای پاک د نبوت درجه ورکړه نو تر ټولو لومړی حضرت ابوبکر رضی الله عنه وربانديې ایمان راووړ . له همدې کبله یې د صدیق لقب وګاټه .

حضرت ابوبکر صدیق رضي الله عنه تر ایمان راوړلو دمخه هم ډېر سخي، رښتینی او نېک سړی و . هېڅکله یې د بتانو عبادت نه و کړی. ډېر شتمن و . د رختونو سوداګري به یې کوله . د خپلې رښتینولۍ او پاکۍ له کبله په خپل کار کې ښه بریالی و . تر ایمان راوړلو وروسته یې د نېکۍ کارونه نور هم زیات کړل . د هغه ټول مال غریبانو ته وقف و . له خوارانو او بېوزلو سره به یې مرسته کوله . د پور وړیو پورونه به یې پرې کول . په کومو مریانو چې به یې بادار ظلم کاوه ، هغه به یې ترې په بیه اخیستل او بیا به یې آزادول .

تر نبوت وروسته حضرت محمد صلی الله علیه وسلم په مکه معظمه

کې دیارلس کاله تېر کړي وو. د مکې کافرانو به په رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغوی په ملګرو ډول ډول ظلمونه کول . له همدې امله رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینې منورې ته د تللو اراده وکړه . ټول اصحاب یې له ځان څخه مخکې واستول او حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه یې له ځان سره ایسار کړ . دوی دواړه تر ټولو وروسته



مدینې منورې ته ولاړل . حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په رښتیا داسلام خادم و . کله چې به د اسلام په لاره کې د سر او مال د قربانۍ حاجت و ، دی به تر ټولو مخکې و . په غزاګانو کې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره څنګ په څنګ قربانۍ ته ولاړ و .

یو ځل په یوه غزا کې د مالي مرستې ضرورت و . رسول الله صلی الله علیه وسلم اصحابو ته وفرمایل چې د چا څه له وسه پوره وي ،

کې د یارلس کاله تېر کړي وو. د مکې کافرانو به په رسول الله صلی الله علیه وسلم او د هغوی په ملګرو ډول ډول ظلمونه کول . له همدې امله رسول الله صلی الله علیه وسلم مدینې منورې ته د تللو اراده وکړه . ټول اصحاب یې له ځان څخه مخکې واستول او حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه یې له ځان سره ایسار کړ . دوی دواړه تر ټولو وروسته



مدینې منورې ته ولاړل . حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه په رښتیا داسلام خادم و . کله چې به د اسلام په لاره کې د سر او مال د قربانۍ حاجت و ، دی به تر ټولو مخکې و . په غزاګانو کې له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره څنګ په څنګ قربانۍ ته ولاړ و .

یو ځل په یوه غزا کې د مالي مرستې ضرورت و . رسول الله صلی الله علیه وسلم اصحابو ته وفرمایل چې د چا څه له وسه پوره وي ،

د اسلامي پوځ له پاره دي د جنګ د سامان په برابرولو کې مرسته وکړي. هر چا له خپل وس سره سم څه نا څه مرسته وکړه . حضرت ابوبکر رضی الله عنه کور ته ولاړ او په کور کې چې يې څه لـرل هـغـه ټول يې راوړل . د رسول الله صلی الله علیه وسلم په مخ کې يې ډېرى کړل . هغوی ترې پوښتنه وکړه : "د اولاد له پاره دې څه پرېښودل ؟" دوی ځواب ورکړ : " زما د بچيو له پاره دخدای او رسول مينه بس ده . "

د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم تر وفات وروسته حضرت ابوبکر رضی الله عنه خلیفه شو. ترخلافت وروسته څه دپاسه دوه کاله ژوندی و .

د عربو په خوا کې يوې ډډې ته د ايرانيانو حکومت و . بلې ډډې ته يې په شام کې روميان وو . هغوی به هر وخت په مسلمانانو يرغلونه کول . حضرت ابوبکر صديق رضی الله عنه ور پسې پوځونه واستول او تر خپل وفات پورې يې نيم عراق او نيم شام فتح کړ .

حضرت ابوبکر رضی الله عنه د هجرت په ديارلسم کال وفات شو . په دغه وخت کې د هغه عمر درې شپېته کاله و . د بي بي عايشې رضی الله عنه په کوټه کې د رسول الله صلی الله علیه وسلم په خوا کې ښخ کړای شو .




زموږ وطن افغانستان دی  پر موږ ټولو باندې گران دی

کابل جان يې پايتخت دی  شکر ښکلی زموږ بخت دی

په هوا يې ټول رغېږي  په همت يې تل نازېږي

با غيرته انسانان يې  که شتمن دي که خواران يې

د وطن په مينه وياړي  په فراق کې يې تل ژاړي

واړه نجونې ، هلکان يې  هم واړه، زاړه ، ځوانان يې

وايي پاخېږئ بېدار شئ  درس، تعليم له تيار شئ

هم ودان مو گران هېواد کړئ  ښه په مينه يې آباد کړئ

"قسيمي" مو دعا گوی دی  خواري وکړئ الله لوی دی

# روغتیا

ډېرې ناروغۍ له یوه ډول وړو وړو شیانو څخه پیدا کیږي . دغو وړو وړو شیانو ته مکروبونه یا جراثیم وایي. مکروبونه یا جراثیم دومره واړه وي چې بې له ذره بین څخه یې څوک نه شي لیدلای.

وایي چې په یوه څاڅکي اوبو کې په لکونو مکروبونه موجود وي . هغو مرضونو ته چې د دې مکروبونو په وسیله پیدا کیږي ، ساري مرضونه وایي ؛ لکه : نری رنځ ، نس ناستی ، وبا ، پېچش ، نزله ، زکام چې سره لري ، تبه او ټوخی هم په کې وي . مکروبونه په هغو ځایونو کې پیدا کیږي چې خچن وي . اوبه او هوا یې ناپاکه وي. لمر نه وررسېږي خوراک، څښاک ، پوښاک ، کورونه ، لارې ، کوڅې او داسې نور هر څه خیرن او خـچن وي. چېرته چې ډېرانونه، خځلې، او خوسا



ړندونه وي، ماشي او مچان په کې ډېر وي.



پـه داسې ځایونو کې خلک بې لـه وبا څخه
هم تـل نـاجـوړه وي . د چـا ینې او تـوري
پړسېدلي وي. څوک د خیټې په اغېز او نس
خـوږي اخته وي او د چا تبه او توخـې وي .

په کار دي چې صفایي او نظافت ته پام وشي . تر تولو ضروري خبره
د هوا صفایي ده . موږ باید تازه او صفا هوا تنفس کړو . د هستوګنـې
خونو ته مو باید لمر ور ننوځي . په تازه هوا او لمر کې مکروبونه زیاتره
مري . بیا د اوبو صفایي په کار ده . په کورونو کې باید څاه ګانې ولرو .
د څاه ګانو اوبه تر نورو تازه او پاکې وې . د څاه ګانو سرونه باید پټ
وساتو چې څه په کې ونه لوېږي . وروسې د خوراک صفایي ضروري ده .
د خوراک لوښي باید سوتره او پاک وي. د خوراک شیان هم باید پاک
وي. خواړه باید له ماشیو او مچانو څخه خوندي وساتل شي . ځکه چې





مچان په هرگنده شي کښښني اوپه پښو
پورې يې ډېر مکروبونه ننبتي وي .
تر خوړو وروسته غاښونه صفا کول
هم ډېر ضروري دي . ځکه چې
اوري او غاښونه له خرابېدو څخه
ژغوري . د ډوډۍ بځرکي چې په غاښونو کې پاتې شي نو غاښونه
خرابوي . ډېر خواږه شيان هم غاښونه خرابوي .

دغه شان ، د بدن او جامو صفايي هم ډېره ضروري ده . د کور
صفايي او دلارو کوڅو پاک ساتل هم زيات ضروري دي . د خځلو او
گنده گيو اچولو له پاره له کور څخه په ډډه ژوره کنده کېندل په کار دي
چې د باد او سيلۍ له کبله دغه خځلي او گنده گۍ اخوا دې
خوا خپرې نه شي . له کورونو څخه د ناپاکو اوبو د ايستلو له پاره
دې سر پټې نالۍ او مورۍ جوړې شي چې ځای په ځای ونه درېږي
او خوسا نه شي .

که موږ په رښتيا سره د خپل خوراک ، څښاک، پوښاک ، کور ، کلي
او لارو کوڅو صفايۍ او پاکۍ ته پام وکړو نو له ډېرو ناروغيو څخه به
مو ځان ساتلی وي او دارو ، درملو ته به مو ضرورت نه پېښېږي .

# متلونه

- په یوه گل نه پسرلی کېږي .
- ژرنده که د پلار ده هم په وار ده .
- له یوه لاس شخه تــک نه خېژي .
- وخت سره زر دی .
- د لندو ختهو لړ او به دارو وي .
- مه کوه پر چا چې وبه شي پر تا.
- خپل عمل د لارې مل دی .
- غل په غره کې نه ځایېږي .
- چې څه کرې هغه به رېبې .



# دعا

دا زموږه مدعا ده　　　دا زموږ ټولو دعا ده

خدایه پاکه ، موږه لوی کړې　　　په هر څه باندې مو پوی کړې

علم ، پوهه ، عقل راکړې　　　ذهن ،زړه زموږ رڼا کړې

هر مشکل راته اسان کړې　　　موږ له غم نه په امان کړې

موږه لوی داسې مولا کړې　　　چې په کار مو دهر چا کړې

د اسمان کړې موږه ستوري　　　چې ټول خلک راته ګوري

موږ د دین پر لار روان کړې

موږ صحیح مسلمانان کړې .

# عایشه صدیقه رضي الله عنها

بي بي عایشه رضی الله عنها د لومړي خلیفه حضرت ابوبکر صدیق رضی الله عنه لور وه . کله چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم لومړنۍ بي بي حضرت خدیجه رضی الله عنها وفات شوه نو له بي بي عایشې رضی الله عنها سره یې واده وکړ . دا ډېره نېکه، پاکه اوبختوره بي بي وه . نبي کریم صلی الله علیه وسلم ورسره ډېره زیاته مینه لرله .

بي بي عایشه رضی الله عنها د نبوت په څلورم کال په مکه کې پیدا شوې وه . دې به تل ښېک او ښه کارونه کول . د احد په جګړه کې یې په خپله ټپیانو ته اوبه ورکولې . په ډېرو سفرونو کې به له نبي کریم صلی الله علیه وسلم سره ملګرې وه . له رسول الله صلی الله علیه وسلم سره یې ډېر ساده ژوند تېر کړی دی . کور یې له خاورو او لرګیو څخه جوړ شوی و . د کور ټول سامان یې یو کټ ، یو پوزی ، یوه بستره ، یو بالښت ، دوه منګي او یو کنډول و . په ورځو ورځو به یې په مړه خېټه خوراک نه کاوه . دې پاکې بي بي به د کور ټول کار او روزګار کاوه . اخښل ، پخول ، ګنډل ، مینځل او داسې نور هر څه یې په خپله کول .

بي بي عايشه رضی الله عنها په سخاوت مشهوره وه . ځينو شتمنو اصحابو چې به رسول الله صلی الله عليه وسلم ته څه مال ډالۍ کړ ، هغه به يې ټول پر مسکينانو وېشه . ځان ته به يې هېڅ نه پرېښودل .

د رسول الله صلی الله عليه وسلم تر وفات وروسته ، بي بي عايشه رضی الله عنها تر ډېرې مودې ژوندۍ وه . ټول عمر يې د قرآن شريف او حديثونو په ښوولو کې تېر کړ . له دې امله چې د رسول الله صلی الله عليه وسلم په صحبت کې ډېره زياته پاتې شوې وه ، نو لويو لويو اصحابانو به ورڅخه د دين په باره کې پوښتنې کولې . بي بي عايشې رضی الله عنها پوره ديني علم درلود .

حضرت بي بي عايشه صِديقه رضی الله عنها داووه شپېته کلونو په عمر وفات شوه . د دې ژوند زموږ له پاره يو غوره سبق دی .

# چې څه کرې ، هغه به ريبې

په يوه ځنګله کې د يوه ډنډ په غاړه يو ډېنګ اوسېده . يوه ګيدړه به هم هغه ډنډ ته د اوبو څښلو له پاره ورتله . د دواړو په خپلو کې سره ملګرتيا شوه . يوه ورځ د ګيدړې په زړه کې ور تېر شول چې له ډېنګ سره څه ټوکه په کار ده ؛ ډېنګ ته يې وويل : " وروره ، سبا ته زما مېلمه يې . ډوډۍ به له ما سره خورې. "هغه ورته وويل : " ډېره ښه ده . "

سهار وختي ډېنګ د ګيدړې کره ولاړ . ګيدړې ډېره خوندوره ښوروا پخه کړې وه .

دوه پاک قابونه يې را واخيستل او ښوروايي پـه کې واچوله . يو قاب يې خپلې مخې تــه کېښود او بـل يــې د ډېنګ مــخې تــه کېښود ؛



ورتـه يـې وويـل:"وروره ، شـروع وکـړه." څـرنګـه چې قابونـه تـلغ وو ، د ډينګ اوږده مـښوکـه پـه کې نـه ډوبېـده او د ډيـنګ چې ټولـه مښوکه ډوبـه نــه شي ، څـه نـه شي څښـلای . ډيـنګ ورتـه همداسـې ناسـت و اوګيـدړې خپـله ښوروا پـه شړپ شړپ وڅښـله . چې خپـل لوښی يې تش کړ نـو ډينګ تـه يې وويل : " وروره ، د ښوروا خوند څنـګه و ؟ ځان دې مـوړ کـړ او کـه نـه ؟ " هغـه ورتـه وويـل : " ډېره خونـدوره ښـوروا وه . ډېر خونـد يـې وکـړ . ستا مېلمستيا بـه مې ټول عمر پـه ياد وي . اوس زما وار دی . سبا بـه تـه زما مېلمنـه يې . لـه ما سره بـه ډوډۍ خورې ."

ګيـدړه سـهار پـه خوشالۍ د ډيـنګ کـور تـه ولاړه . پـه زړه کې يې ويل چې بيـا بـه پـرونـی حـال وي . زه بـه مزې کـوم او ډيـنګ بـه راتـه ګوري. خو خبره نـه وه چې هغـه هم ورتـه ځان جوړ کړی و . ډينګ هم خونـدوره ښوروا



تیاره کړې وه . خو د قابونو په ځای یې ورته د تنګې خولې مرتبانونه راوړي وو . یو مرتبان یې خپلې مخې ته کېښود او بل یې د ګیدړې مخې ته ؛ ورته یې وویل : " شروع وکړه ، ډېره ښه ښوروا ده . "

ډینګ خو خپله مښوکه ور کوزه کړه . په مزه مزه یې ښوروا وڅښله. خو ګیدړه ورته همداسې ناسته وه . د هغې سر په نري مرتبان کې نه شو ننوتلای . ډینګ چې ځان موړ کړ نو ګیدړې ته یې وویل : "خورې ، زما سر تیټ و . تاته مې فکر نه و. تا هم څه وخوړل او که نه ؟ ما خو ډېر کوښښ کړی و چې ستا تر ښوروا ښه ښوروا پخه کړم. "
ګیدړې ورته په خندا وویل : " وروره ، ستا د ښوروا خوند زما تر ښوروا ډېر ښه و . " او چې ورڅخه روانه شوه نو له ځان سره یې وویل: " چې څه کړې هغه به رېبې . "

مطلب دا دی چې له چا سره دې څه وکړل هماغسې به درسره کیږي.

# زموږ بدن

د بنیادم بدن د ماشین په شان دی . په ماشین کې بېلې بېلې پرزې وي . هره پرزه په خپل وخت خپل کار کوي . زموږ د بدن اندامونه هم د ماشین د پرزو غوندې په خپل خپل ځای لګېدلي دي . هر یوه پرزه په خپل وخت خپل کار کوي؛

لکه : موږ په پښو ځو . په لاسونو شیان نیسو . په سترګو ګورو په غوږونو اورو . په پوزه د شیانو بوی معلوموو. په خوله خواړه خورو . په ژبه خبرې کوو او د خوړو خوند معلوموو .

دا خو زموږ د بدن برسېرنې برخې دي . د بدن د ننه معده ده . هغه خواړه هضموي او وینه ورڅخه جوړوي . وینه د رګونو په وسیله په ټول بدن کې ګرځي او بیا سږي ته ځي. سږی وینه صفا کوي او زړه ته یې استوي . زړه یې د رګونو په وسیله په بدن کې خپروي . د وینې دغه دوران همېشه دغسې جاري وي .

ماشین دمې ته اړتیا لري . که شپه او ورځ چلېږي نو ژر له کاره لوېږي اوکه په خپل وخت سوږ شي نو ډېره موده کار کوي.دغه حال زموږ د بدن هم دی . بدن هم په ډېر کار ستړی کېږي . بدن دمې ته

ضرورت لري . څوک چې پر له پسې کار کوي، ژر ناروغ او بې سېکه کېږي.



څنګه چې ماشین په تېلو ګرځي ، دغسې زموږ بدن هم خوړو ته اړتیا لري . له خوړو څخه بدن طاقت مومي . د طاقت موندلو له پاره په کار دي چې معده روغه وي چې خواړه هضم کړي .



غاښونه باید پاک وساتل شي . پاک غاښونه روغ پاتې کېږي . روغ غاښونه خواړه ښه میده کوي .

میده شوي خواړه ژر هضمیږي اوبدن ته ښه وده ورکوي . د بدن دننه بېلابېلې پرزې دي ؛ لکه : معده، ینه ، پښتورګي، کولمې ، زړه او سږی چې هره یوه یې خپل خپل کار کوي او تر ټولو مهمه یې معده ده. معده هم دمې ته اړتیا لري . که معدې زاره خواړه نه وي هضم کړي اونوي خواړه ورشي نو یو به هم په کې پوره هضم نه شي. په کار دي چې خواړه په ټاکلي وخت وخوړل شي .

د بدن د روغتیا له پاره ، په خوړو کې له احتیاط او معدې ته له دمې ورکولو سره سره ، ورزش او تازه هوا ډېره ضروري ده . څوک چې دې ټولو خبرو ته پام کوي صحت به یې ښه ، بدن به یې غښتلی ، دماغ به یې تازه او هر وخت به روغ ، جوړ اوخوشال وي .







# مچ



موږ یو شمېر دښمنان لرو. له دې امـلـه چې ډېر کـوچني دي نـو لـه پـامـه مو غورځولـي دي . خو دوی ډېر خـطـرنـاک دي . دوی لـه مـوږ سره په تـوره یـا ټوپک جنګ نه کوي . مخامخ نه راځي. پټ په پټه رابانديې یرغلونه کوي. تر څو چې موږ خبرېږو ، دوی خپـل کـار کړی وي . وینه یې را څخه څښلې وي. یا یې بـل څه تـاوان را رسولی وي. ځینې یې لوی وي او پـه سترګو لیدل کیـږي . خو ځینې یې دومره کوچني وي چې بې وسیلې پـه سترګو نه لیدل کیږي .

په دغـو غـلیمانو کې یـو هـم مـچ دی . مـچ ډېر نـاولی شـی دی . پـه خوسـا او خـرابو شـیانو کښېـنـي. نـاولي شـیان خـوري . پـه دغـو نـاولیو شیانو کې خراب او زهرجن مکروبونه وي . دغه مکروبونه د مچ په پښو پورې نښلي او مچ یې بیا زموږ د خوراک له شیانو سره ګـډوي . په دې توګه د دغو شیانو له خوړلو څخه ناروغي پیدا کیږي .

ځينې ناروغۍ لکه : نرۍ رنځ ، والګي ، نس ناستي او داسې نور له يوه بنيادم څخه بل ته ورځي .

دا ناروغۍ زياتره د مچانو په وسيله خپريږي . د دې له پاره چې په دغو ناروغيو اخته نه شو، په کار دي چې د خوراک او څښاک شيان له مچانو څخه خوندي وساتو .



# د ځان او ځای ښکلا

مینه په دریم ټولګي کې درس لولي ؛ هغه وايي : " زه او ورور مې یما له پاکو، شنو او ښکلیو منظرو سره ډېره زیاته مینه لرو . مورږ د کور په انګــړ کې ډول ډول ونې ، بوټي او ګلان لرو . زه او یما وخت په وخت هغو ته اوبه ورکوو . " مینه وايي : " زموږ په ښوونځي کې هم ډول ډول ونې ، بوټي او ګلان شته . زموږ ټولګیوال له هغو سره ډېره زیاته مینه لري ؛ ډېر پام ورباندې کوي . ټول خپل کورونه ، لارې ، کوڅې ، ښوونځی او خپل هېواد پاک ساتي . ناولي شیان هر چېرته نه غورځوي . په هر څه ډېر پام کوي . "

مینه د خپل کلي د ځنـګله ډېر صفت کوي ؛ هغه وايي:" زموږ د کلي ځنــګل ډېر ښکلی دی . ګــڼې او ښکلې منظرې لري . ډول ډول مارغان په کې ژوند کوي. مارغان خواږه خواږه آوازونه لري. زموږ کلیوال په خپل ځنګله ډېر پام کوي . ونې یا څانګــې یې په خپل سرنه غوڅوي . " د مینې دا حدیث شریف زده دی چې وايي : " که چا یوه ونه وکرله نو خدای پا ک به ورته د هغې ونې دمېوې دهرې دانې په بدل کې تر قیامته پورې ثواب ورکوي ."

# غوماشه



غوماشه تر مچ هم ډېره ضررې ده .
ځکه چې مچ له یوه ځای او بل ځای
څخه ناروغي راوړي خو د غوماشې
په خپل ججوري کې زهر وي .

غوماشه بېلا بېل ډولونه لري چې يو ډول يې د ملاريا غوماشې
دي . د ملاريا غوماشه چې څوک وچيچي نو بدن ته يې د ملاريا
مکروب ور دننه باسي . څو ورځې وروسته ور باندې سړه تبه راځي . دا
تبه ډېره ګرنده او رېږدوونکې وي . که سم علاج يې ونه شي نو د
بنيادم توری غټېږي . ينه يې کمزورې کېږي او په زېړې اخته کېږي .
دغه راز ، نورې ډېرې ناروغۍ هم ورڅخه پيدا کېږي .

مچ او غوماشه دواړه زموږ د روغتيا دښمنان دي . ځان ترې ساتل په
کار دي . د خوراک شيان دې همېشه پټ وساتل شي چې مچان پرې ونه
بښېږي . له هغې هټۍ څخه هېڅکله د خوراک شيان مه اخلئ چې جالۍ
يا جالۍ ته ورته کوم شی يې ورباندې نه وي غوړولی .

دغه راز ، د خونو کړکيو او دروازو ته جالۍ يا داسې پردې وځړوئ

چې د غوماشو مخه ونیسي . هره اونۍ یو ځل په کورونو او ټولو هغو ځایونو کې چې کورونو ته نژدې وي او غوماشه په کې پټېدلای شي ، یو ځل ډي ډي ټي وشپندئ .

غوماشه په ناولیو ځایونو او خوسا اوبو کې ژوند کوي . په کار دي چې په کور او دکور په شاوخوا کې ناولي ځایونه ، ژورې کندې او خوسا ډنډونه له منځه یوسو . که سمدلاسه یې له منځه وړل گران وي نو هره اونۍ خو باید ډي ډي ټي یا د خاورو تېل هرو مرو ور وشپندو .



# امام حسن عليه السلام او غلام

حضرت امام حسن علیه السلام د حضرت علي رضی الله عنه مشر زوی او د رسول الله صلی الله علیه وسلم لمسی دی .

وايي چې يوه ورځ امام حسن علیه السلام له ښار څخه بهر د خرماوو يوه بڼ ته ورغی . په بڼ کې يې يو غلام وليد چې ډوډۍ خوري او يو سپی ورته مخامخ ناست دی . غلام يوه مړۍ په خپله خوري او بله سپي ته اچوي . حضرت امام حسن علیه السلام حيران شو . ورغی او ورته يې وويل : " عجيبه سړی يې . يوه مړۍ په خپله خورې او بله سپي ته اچوې . په دې خو ته په خپله هم نه مړېږې . "

غلام ورته وويل: " څه وکړم ، دا سپی راغی مخامخ راته کښيناست. " امام صاحب ورته وويل : " چغې يې کړه ؛ وې شړه . خوري خو دې نه؟ " غلام ورته وويل : " شړل يې اسان دي خو سوالگر له خپل وره څخه څنگه وشړم ؟ دا کار راته ډېر بد ښکاري . "

امام حسن علیه السلام په دې خبره ډېر خوشال شو . په زړه کې يې وويل چې داسې سړی خو د غلامۍ لايق نه دی . غلام ته يې مخ

ور واړاوه او ورته یې وویل : " ته له دې ځای څخه چېرته ولاړ نه شې .
زما درسره کار دی . زه اوس بېرته راځم ."

لږ وروسته ، حضرت امام حسن علیه السلام راغی او غلام ته یې
وویل : " ته سر له اوسه ازاد یې او دا بڼ هم ستا شو . ما ستا قیمت اود
دغه بڼ قیمت ستا مالک ته ورکړ. دا بڼ ستا انعام دی."

هغه لومړی لږ غلی شو . بیا لږ ور مخکې شواو ورته یې وویل :
"امام صاحبه ، ستا د دې مهربانۍ بدل خو زه نه شم درکولای . ډېره
زیاته مهرباني دې وکړه چې زه دې آزاد کړم . خدای پاک دې تاته ډېر
اجر در کړي . څنګه چې خدای تعالی ستا په زړه کې دا خبره واچوله
چې ما آزاد کړې نو داسې زه هم د خدای تعالی په نامه دا بڼ وقف کوم .
خدای پاک دې زما دا خیرات قبول کړي . "



# اسلامي ترانه

دين زموږ اسلام دی ، د دې لارې پتنګان يو

موږ مسمانان يو

موږ مسلمانان يو

رب مو يو الله دی چې قادر په هر يو کار دی

بې مثله واکدار دی

بې مثله واکدار دی

شکر امتيان د محمد آخر زمان يو

موږ مسلمانان يو

موږ مسلمانان يو

لوی کتاب ، قرآن ، زموږ د لارې بل مشال دی

مل مو ذوالجلال دی

مل مو ذوالجلال دی

دا مشال په لاس کې او د حق په لار روان يو

موږ مسلمانان يو

موږ مسلمانان يو

لاره د اسلام په ټولو لارو کې بهتره ده

ډېره معتبره ده

ډېره معتبره ده

موږ به پر دې لاره همېشه روان دوان یو

موږ مسلمانان یو

موږ مسلمانان یو

کفر کړې نسکور ، خدایه ، پوره زموږ ارمان کړې

لوړ مو خپل نشان کړې

لوړ موخپل نشان کړې

موږه کړې غالب چې ستا د پاک دین خادمان یو

موږ مسلمانان یو

موږ مسلمانان یو.

# امام ابو حنیفه رحمة الله علیه

د امام ابو حنیفه رحمة الله علیه اصلي نوم نعمان دی . خلک یي ابو حنیفه بولي . دی د هجرت په اتیایم ( ۸۰ ) کال د کوفې په ښار کې له یوه بډای کره وزېږېد. په کوچنیوالي کې یې له خپل پلار سره سوداګري کوله .

یوه ورځ ورته د امام شعبي رحمة الله علیه په نامه یوه عالم د علم د زدکړې نصیحت وکړ. دې نصیحت پرې دومره اغېزه وکړه چې له هماغې ورځې څخه یې په زده کړې پسې ملا وتړله . دغه وخت کوفه د علم لوی مرکز و . ډېرې مدرسې په کې وې . د شاوخوا سیمو ډېرو زده کوونکو به په کې علم زده کاوه .

امام ابو حنیفه رحمة الله علیه د خپل ښار له عالمانو څخه قرآن مجید ووایه او حدیثونه یې ترې زده کړل . دفقهې د زده کړې له پاره له نومیالي استاد ، حماد ، سره شاګرد شو . د حدیثو د پوره زده کړې له پاره مکې ، مدینې اوځینو نورو لویو لویو ښارونو ته ولاړ . له ښو عالمانو څخه یې حدیثونه ولوستل .

امـام صـاحب رحمـة الله عـليه د قـوي ذهـن، پاخـه عقـل او لـوړ فكـر خـاوند و . پـه ډېـره لـږه مـوده كـې يـې ټـول ديـني عـلم زده كړ او ډېر ژر د دې وړ شو چې نور ورځخه زده كړه وكړي .

د استـاد حمـاد تـر مړيـنې وروستـه ابـو حـنيفه رحمـة الله عـليه دخپـل استـاد ځـای ونيـو . پـه لـږه مـوده كـې يـې نوم تر لرې لرې هېوادونو خپور شو او ډېر خلك د زده كړې له پاره ورمات شول .

امـام صـاحب ډېر ديندار او پرهېزگار عالم و . دخپل ورځني ژوند له پـاره بـه يـې د رختونو سوداگري كوله . ډېر سخي سړی و . له خلكو سره بـه يـې ډېره ښېـگـنـه او مرسته كوله .

د هغـه وخـت خـليفه ، ده تـه ډېـر ځـلـه ، بلـنه وركـړه چـې د قـاضـي پـه تـوگـه ورسره كـار وكـړي . خـو ده ونـه مـنله . خـليفه پـه دې خبره خواشيني شـو او امـام صـاحب يـې بـندي كـړ . آخـر پـه همدې بنديخانه كې پـه ۱۵۰ قمري هجري كال كې وفات شو .

# لوی ځوان

د ایران په یوه نامتو کلي ،گیلان ،کې یوه بوډۍ اوسېده. کونډه وه.
نور څوک یې نه لرل . یوازې یو نازولی زوی یې درلود چې سبق یې وایه.
کله چې دغه هلک په کور کلي کې زده کړه پای ته ورسوله نو د لوړې
زده کړې له پاره یې بغداد ته د تللو نیت وکړ . له مور څخه یې اجازه
وغوښته . د مور یې وربانديې زړه نه کېده چې دومره لرې دې
ولاړ شي . خو زړه یې سخت کړ ؛ اجازه یې ورکړه او د سفر سامان یې
ورته تیار کړ .

په هغه زمانه کې به خلک د غلو له وېرې له قافلو سره تلل . دغه
هلک هم له یوې قافلې سره د تگ وخت وټاکه . دتگ په وخت کې یې مور
ورته وویل : " د کمیس په جېب کې مې درته څلوېښت روپۍ ایښې دي.
د جېب خوله مې ور گنډلې ده . پام ورباندې کوه. د تنگسې په وخت
کې به دې په کار شي . " مور یې ورته دا نصیحت هم وکړ چې که هر
څومره سخته ور باندې راشي دروغ دې نه وایې .

قافله روانه شوه . چې لږ غوندې مزل یې وکړ ، په لاره کې ورته غله
ناست وو . تر قافلې چاپېر شول . وار په وار به یې یو یو سړی دراوه .

تالاشي کاوه به يې او چې څه به يې ورسره موندل ، هغه به يې ترې اخيستل . د دغه هلک وار چې راغی نو غله ترې پوښتنه وکړه : "هلکه، له تا سره څه شته ؟ " هغه ورته وويل : " هو ؛ له ما سره څلوېښت روپۍ دي . "

غل د ده په رښتينولۍ پورې حېران شو او دی يې نېغ خپل مشر ته ور ووست . د غلو مشر له هلک څخه پوښتنه وکړه چې د دې پټ مال حال يې ولې ووايه ؟ هغه ورته وويل :" زه مې مور له درواغ ويلو څخه ايسار کړی يم . زه دهغې نافرماني نه شم کولای . "

د هلک دې ساده او رښتيا خبرو د غلو د مشر په زړه دومره اغېزه وکړه چې دماشومانو په شان په ژړا شو . ويې ويل : " دا ماشوم د مور خبره پر مځکه نه غورځوي . خو زه د خپل خدای له امر څخه سر غړوم . د هغه مخلوق ته تکليف رسوم . " له واره يې له غلا څخه توبه وايسته او د قافلې لوټ کړی مال يې بېرته ورکړ . د دې رښتيني هلک په برکت ټوله قافله له نقصان څخه وژغورل شوه او دغلو يوه لوی ټولگي له غلا څخه توبه وايسته.

دغه هلک وروسته د پېر لوی عالم او د برخې خاوند شو . خلک يې شيخ عبدالقادر جيلاني ، لوی څوان ، پيرانو پير او غوث الاعظم بولي . دا هر څه د ده د رښتينولۍ برکت و .

# ماشوم وايي

مور ماشومان د میندو او پلرونو له پاره لوی نعمتونه یو . په کوم کور کې چې ماشوم وي ،مور ، پلار او کورنۍ ورسره ډېره خوشاله وي .

مور ماشومان ټول یو ډول حقونه لرو . مور مینې ته اړ یو . درس لوستل او لوبې کول زمور حق دی . لویان زمور خبرو ته غور ږدي . د پوښتنو ځوابونه راکوي . لوبې راسره کوي . چې ناروغ شو د علاج له پاره مو ډاکټر ته بیایي . هر کله چې څه ستونزه را پېښه شي ، نو خپلې میندې ، پلرونه او یا مشران ور څخه خبروو . مور د کور په کارونو کې له خپلو کورنیو سره مرسته کوو . د کور د کارونو په باره کې خپل نظر ورکوو . لویان هېڅکله په مور درانه او سخت کارونه نه کوي .

مور یو بل ته نه په غصه کیږو . په خپلو کې جنګونه نه کوو . کوښښ کوو چې د چا زړه را څخه آزار نه شي . مور خپل وخت په خندا او خوښۍ تېروو .

# آزادي



گلدین له یوه چا سره د جنګ له امله ونیول شو او د دري کالو له پاره بندي شو . هغه د بند شپې ورځې په ډېر کړاو سره تېرولې . په خپلو کړو ډېر پښېمانه و . ویل به یې : " که خدای تعالی له بند څخه خلاص کړم بیا به له هېچا سره جګړه نه کوم . "



آخر ګلدین تر دري کاله بند تېرولو وروسته را خلاص شو. ډېر خوشال و. پرلاره یې فکر کاوه چې اوس به ، که خیر وي ، خپل کلي ته ولاړ شم. خپل خپلوان به ووینم . له خپلو همزولیو او دوستانو سره به بیا کښېنم، پاڅېږم او خبرې اترې وکړم.



ګلدین خوشاله خوشاله کور ته روان و. په لاره کې یې یو سړی ولید چې پنجره یې په لاس کې وه . په پنجره کې دوې مرغۍ وې . ګلدین چې مرغۍ په پنجره کې بندې ولېدې نو خپل بند وریاد شو .



په مرغيو يې زړه وسوځېد. لـه سړي

څخه يې پوښتـنـه وکـړه: " کاکا، په دې

مرغيو څه کوې؟ " سړي ور تـه وويـل:

"بچيه، خـرڅوم يې." ګلدين ورڅخه دواړه



مرغۍ په بيه واخېستې. د پنجرې کړکۍ

يې پرانيسته او دواړه مرغۍ يې پـه هـوا کې پـرېښودې . مـرغۍ

ولاړې ؛ والـوتې . ګلدين تشه پنجره سړي ته ورکړه . سړی حيران شو

چې خلک مرغۍ په څومره خوارۍ نيسي او په شوق يې ساتي او ده

تيارې نيولې مرغۍ په بيه واخيستې او بېرته يې پرېښودې .

ګلدين د سړي په حيرانتيا پوه شو . ورته يې وويل : " کاکا ، ما څه

موده په بند کې تېره کړې ده . د بند عمر ډېر سخت او له تکليفونو څخه

ډک وي . ما چې دا مرغۍ په بند کې وليدې نو فکر مې وکړ چې دوی

به هم د نورو بنديانو غوندې ډېرې په عذاب وي؛ ځکه مې آزادې کړې."

ګلدين رښتيا وايي : د بند عمر ډېر سخت عمر دی . په کار دي چې

د آزادۍ قـدر وکړو. دا خـاوره زموږ پلرونو او نيکونو په ډېرې قربانۍ

سره ګـټلې ده . موږ بايد د خپل هېواد د آبادولو او آزاد ساتلو له پاره

هر ډول قربانۍ ته تيار وو .

# یوه پوښتنه ، لس ځوابونه

په یوه کلي کې یو ډېر نومیالی عالم اوسېده . یو ځل ورته له یوه لرې ځای څخه لس کسان راغلل . ده ورسره په ډېره مینه سترې مشي وکړه او په ډېر عزت یې په ډېره کښېنول . چې دمه یې جوړه شوه نو پوښتنه یې ورڅخه وکړه چې څنګه یې پښېنه را کړې ده ؟ هغوی ورته وویل چې موږ ستاسو ډېر صفت اورېدلی دی . زموږ ټولو په زړونو کې یوه پوښتنه ده . خو دا چې تاسو د ډېر علم خاوند یاست نوموږ هر یوه ته به بېل بېل ځواب راکوئ . هغه عالم ورته وویل : " ډېره ښه ده . تاسو خپله پوښتنه وکړئ . " هغوی ورته وویل : " په علم او شتو کې کوم یو غوره دی او ولې غوره دی ؟ " عالم هر یوه ته په خپل خپل وار مخ ور واړاوه او ورته یې وویل :

"۱. شته خدای پاک فرعون ته ډېر ورکړي وو او علم یې پیغمبرانو ته.

۲. د شتو به ته حفاظت کوې خو علم به ستا حفاظت کوي .

۳. د شتمن دښمنان ډېر وي او د عالم دوستان .

۴. شته په لګولو باندې کمېږي او علم چې څومره لګوې هومره زیاتېږي .

۵. شتمن زیاتره بخیل وي ، خپل شته پټوي او عالم سخي وي ، خپل علم له نورو څخه نه سپموي .

٦. شته در څخه غله پټولای شي ؛ دښمن یې درڅخه په زور اخښستلای شي . خو علم درڅخه نه څوک پټولای شي او نه یې اخښستلای شي .

۷. مال او دولت له کاره وځي . خو علم هېڅکله له کاره نه وځي .

۸. شتمن زیاتره کبرجن وي او کبرجن د خدای تعالی دښمن دی . خو عالم بې کبره او عاجز وي .

۹. علم د بنیادم دماغ روښانه کوي او نېکۍ ته یې ور بولي . خو شته ، زیاتره ، د بنیادم دماغ تیاره کوي او بدۍ ته یې ور بولي .

۱۰. د دولت حد شته خو دعلم حد نشته . »

مېلمنو چې ځوابونه واورېدل نو ډېر خوشاله شول ؛ ویې ویل : " رښتیا چې علم له شتو څخه ډېر غوره دی ! "



# خوا خوږي

د اسلام دوهم خليفه حضرت عمر فاروق رضي الله عنه به د شپې له مخې د مدينې په ښار کې ګرځېده ؛ چا ته به يې ځان نه ور ښود ؛ غوښته يې چې د خلکو له اصلي حالت څخه ځان خبر کړي او په هره معامله کې له اسلامي عدل او انصاف څخه کار واخلي .

له شپو څخه يوه شپه ، حضرت عمر رضی الله عنه ، د يوه کور له څنګه تېرېده . ويې ليدل چې د کور په غولي کې يوه ښځه ناسته ده .



اور يې بل کړی دی. کټو يې باندې کړې ده. شاوخوا يې ماشومان ناست دي . ژاړې او له مور څخه خواړه غواړي . مور يې په خبرو دلاسا کوي ؛ ورته وايي : " مه ژاړئ . اوس به کټو پخه شي . تاسو له به درته په مخ کې کېږدم چې په مړه ګېډه يې وخورئ . لږ صبر وکړئ . اوس به پخه شي ." ماشومان به يوه شيبه غلي وو او بيا به په ژړا شول . مور به يې بيا ورته وويل : " بچيانو ، چپ شئ ؛ اوس پخېږي . " آخر په ماشومانو خوب غلبه وکړه او ويده شول .

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه چې دا حال ولید نو اجازه یې وغوښته . کورته ور ننوت . مور ته یې وویل : " ادې ، څه دې باندې کړي دي چې نه پخېږي ؟ ولې دې دغو وړیو ماشومانو ته څه ور نه کړل ؟ تا خو دوی په چل چل کې ویده کړل . "

دماشومانو مور ورته وویل : " زویه ، په کتو کې هېڅ نشته .ما په کې یو څو هډوکي اچولي دي . هغه مې په اوبو کې ایشول او وږي ماشومان مې پرې غولول . له سهار راهیسې په کور کې غله دانه خلاصه شوې ده . پاک خدای ته مې اسره ده . ما ویل چې په څه چل مې د ماشومانو لوږه هېره شي او ویده شي . "

حضرت عمر فاروق رضی الله عنه چې د وږیو ماشومانو د مور داخبرې واورېدې ، ورته یې وویل : " ته لږ صبر وکړه ؛ زه راځم . "

خلیفه ولاړ . له بیت المال څخه یې په خپله د اوړو یوه بوجۍ را په شا کړه او د هغې ښځې کور ته یې ور وړه . ورته یې وویل چې دا اوړه ستاسو شول او ماشومانوته دې ترې ډوډۍ پخوه. د ماشومانو مور خلیفه ته ډېرې زیاتې دعاګانې وکړې .



# سوال کول ، که کار کول ؟



محمود لـه خپل پلار سره پر لاره روان و . یو هـلک چې شلېدلې جامې یې په غاړه وې پـه مخـه ورغی. هـلک ورتـه د پیسـو سـوال وکـړ. د محمـود پلارتـرې تېرشو. خو محمود دوې افغانۍ ورکړې.

چې لږ څه مخکې ولاړل نو پلار یې ورته وویل : " بچیه ، خیرات ورکول ښه کـار دی . خو دا هـلک زه هره ورځ وینم چې سوال کوي . په سوال باندې روزي گـټـل زما نـه خوښېږي . سـوال کـول ښه کـار نـه دی . حضرت محمد صلی الله علیه وسلم فرمایلي دي چې خپله روزي په کار او زیار وگـټئ ؛ سوال مه کوئ .

وایـي چې یـوه ورځ رسـول الله صـلی الله عـلیه وسـلم تـه یوسـړی راغی او ورتـه یـې سوال وکـړ چې څه راکـړه . رسول الله صلی الله علیه وسلم ور څخـه پوښتـنه وکـړه چـې تـه څـه شـی لـرې ؟ هغـه ورتـه وویل چې زه دوه شیان لرم ـ یـوه مې شـړۍ ده او بـل مـې کـنډول دی .



رسول الله صلی الله علیه وسلم ورته وفرمایل

چې ولاړ شه؛ هغه دواړه راوړه. هغه سړی

ولاړ . کنډول او شړۍ یې راوړل .

رسول الله صلی الله علیه وسلم هغه

دواړه شیان په دوه روپۍ خرڅ کړل. روپۍ

یې د شړۍ او کنډول خاوند ته ورکړې ؛

ورته یې وویل چې په یوه روپۍ باندې ځان ته ډوډۍ واخله او په بله روپۍ باندې یو تبرګی او پړی واخله . ځنګله ته ځه ؛ لرګي راوړه او خرڅوه یې .

هغه سړي دا کار پیل کړ او په لږو ورځو کې یې حال ښه شو . په تن پټ شو . په خېټه موړ شو . تر دې چې له نورو غریبو او بېوزلو خلکو سره به یې مرسته کوله ."

محمود د خپل پلار خبرو ته غوږ ایښی و . پلار یې ورته په اخر کې وویل : " بچیه ، رسول الله صلی الله علیه وسلم ته دا سخته نه وه چې هغه سوالګر ته یې روپۍ ورکړې وای . خو هغوی دا نه غوښتل چې دا سړی دې دسوال په روزۍ روږدی شي ."

# د بزگر ژوند

چې پسرلی شي نو هر شی را ژوندی شي . ونې پاڼې وکړي. مېوه دارې ونې گل شي . شړشم وغوړېږي . داسې معلومېږي چې پر ټوله مځکه چا ژېړ څادر غوړولی وي . په دغه موسم کې بزگر گنې کري .



رومي بانجڼ، تورايي ، کدو او تور بانجڼ هم په دغه موسم کې کرل کېږي . دوکانونه له رنگ رنگ مېوو څخه ډک وي. ژېړ ژېړ لوکاټ ، تورې سرې الوچې، زردالو او انځر د اخر پسرلي مېوې دي .

د سختې گرمۍ په موسم کې هم بزگر وزگار نه وي . د غنمو لو کوي . گېډۍ درمند ته ور ټولوي او بیا يې په څپر وهي . څو چې له درمند څخه وزگار يږي نو گنې را لوی شوي وي . د گنيو للون ډېر سخت کار دی .د سرطان او اسد په سخته گرمۍ کې چې ډېره توده هوا



چلېږي ، بزگر په سره لمر کې لگيا وي ، للون کوي. له دې کار څخه چې وزگار شي نو د جوارو ، باجرې او وريجو دکر له پاره مځکه



تیــاروي . ختکي، هنداونې، بادرنگ ،
زردالــو، تـوتـان او شـفتـالـو د گـرمۍ
د مـوسم خونـدورې مېوې دي .

منی هم عجیبه موسم دی. باغـونـه
خـزان شي . ونـې بوټـې پاڼې ورژوي. بزگر په دې وخت کې هم وزگار نه
وي . دمـني پـه سر کـې جـوار وربېي ؛ وړي يـې سـپين کـړي ؛ بيـا يـې
وټکوي . لـه دې څخـه لا وزگار شوی نه وي چې گني تيار او گانۍ شروع
شي. لـه دې څخـه هم لا وزگار نه وي چې د غنمو د کر موسم را رسېدلی
وي . بزگر چې تر څو گانۍ خلاصوي او گني ځای په ځای کوي نو غنم
تيار شوي وي او هر څه بيا لـه سره شروع شي .

غـنم ، تېپر ، ملۍ ، گازرې او چغندر په همدې وخت کرل کېږي . په
دغـه موسم کـې سنگترې ، مـالتې ، امـرود ، کېلې او منې دلۍ دلـۍ
د مېوو په دوکانونو کې پرتې وي .

د بزگر ژوند ډېر ښـه ژونـد دی. هر وخت پـه تـازه هـوا کې گرځي را
گرځي. نرړه پیۍ، کچ، غوړنۍ او مستې خوري . هر څه ورکړه پرېمانه وي.
چرگــې او چرگان ساتي . هم يې غوښې خوري او هم يې هگــۍ خوري .
د ښـه خوراک او تـازه هـوا لـه کبله يـې صحت ښـه وي . ښـه صحت ډېره
لويه خوشالي ده .

# علم او دولت

ربیعه نومی یو ډېر لوی عالم تېر شوی دی . د مدینې منورې په نبوي مسجد کې یې خلکو ته د دین سبق ور ښود . نوم یې تر لرې لرې وطنونو خپور و .

د ده تر پیدا کېدو یوه ورځ مخکې یې پلار په پوځ کې شامل شو . له مدینې منورې څخه خراسان ته ولاړ . دتلو په وخت کې یې خپلې کورنۍ ته د ډېرش زره روپۍ پرېښودې .

ربیعه چې د درس ویلو شو ، نو مور یې په ښوونه او روزنه بې دریغه خرڅ وکړ . هغه ټول مال چې د ربیعه پلار پرېښی و ، د ده په تعلیم ولګېد. دومره کمال یې حاصل کړ چې له ځان سره سره یې د پلار نوم هم روښانه کړ. پلار یې اووه ویشت کاله وروسته له خراسان څخه بېرته هېواد ته راغی؛ چې خپل کور ته ولاړ ، په کور کې ربیعه ناست و.

ربیعه چې پردی سړی ولید چې بې اجازې کور ته ورننوت ، په غصه شو . پوښتنه یې ترې وکړه : " څوك یې ؟ " پلار یې هم ګومان وکړ چې ګواکې دا ناست سړی پردی دی او د ده پر کور یې قبضه کړې ده .

دی هم په غصه شو او له ربیعه څخه یې پوښتنه وکړه : " ته څوک یې

# د احسان بدل

اسد د کلي شپون و . رمه به يې د اوبو څنډلو له پاره سيند ته بووله.
غرمه به يې د توت تر يوې ونې لاندې پنډوله .

اسد نن ډېر ستړی و . رمه يې پنډه کړه . ايله يې سترګې ورغلې
وې ، چې چغه يې ترغوږ شوه. سترګې يې وغړولې . يوه وړه نجلۍ يې
وليده چې د سيند په غاړه ولاړه ده او چغې وهي : " ورور مې ډوب شو.



ورور مې اوبو يووړ. "

اسد شپون و . ښه لامبو يې
زده وه . ماشوم يې چې په اوبو
کې وليد نو له ډېرې بيړې يې
جامې هم ونه ايستلې . سيند
ته يې ور ودانګل . ماشوم يې
له سنيد څخه را وايست . په منډه منده يې د ګل حسن دوی کره يووړ .
ګل حسن ډېر زيات خوشال شو چې خدای پاک ورته زوی له مرګ څخه
ژغورلی دی .

ګل حسن اسد ته ډېرې روپۍ ورکولې خو اسد يوه روپۍ هم

وانخیسته . د گل حسن زوی ، نور حسن ، چې لوی شو ، کله کله به یې د اسدپوښتنه کوله . په زړه کې به یې ویل چې څنګه به د اسد د دې احسان بدل ورکړي ؟

له ورځو څخه یوه ورځ چې اسد د کلي رمه بېدیا ته بوولې وه ، په کور یې اور ولګید. چغې شوې چې د اسد دوی کور اور اخیستی . خلکو ور منډې کړې . نورحسن اوس لوی و . چې ورغی ، ویې لیدل چې د اسد دوی د کور ټول خلک د باندې راوتلي دي . خو یوه ماشومه ترې په کوټه کې پاتې ده . نور حسن له ځان سره وویل چې بس دغه یې وخت دی . په څه چل یې ځان کوټې ته ور ورساوه . کوټه له لوخړو څخه ډکه وه. چت یې اور اخیستی و .



ماشومې زګېروي کول .

نور حسن ماشومه را اوچته کړه او داور په لمبو کې له کوټې څخه راووت . خدای پاک دواړه له مرګ څخه وژغورل .

نور حسن، په دې ډول، د اسد د احسان بدل ورکړ .



# دمعارف ترانه

علم مو شعار دی ، د معارف بیرغ اوچت لرو

ژوند د شرافت لرو

ژوند د شرافت لرو

علم به حاصل کړو ځانونه به فاضل کړو

علم یوه رڼا ده ، موږ د دې رڼا صفت لرو

ژوند د شرافت لرو

ژوند د شرافت لرو

سوله، پیوستون غواړو      پوهه‌کې ژوندون غواړو

موږ له بشریت سره ، مینه ، محبت لرو

ژوند د شرافت لرو

ژوند د شرافت لرو

وړاندې یو روان موږه      یو خدمتګاران موږه

لاس کې مو قلم دی ، اراده پرې د خدمت لرو

ژوند د شرافت لرو

ژوند د شرافت لرو

کړو به د انسان خدمت      موږ د هر افغان خدمت

وایم زه " حقمل" په دې خدمت کې صداقت لرو

ژوند د شرافت لرو

ژوند د شرافت لرو.

# نېکي

حضرت عمر رضی الله عنه د اسلام دوهم خلیفه وه . همېشه به یې د مسلمانانو د ژوند په باره کې فکر کاوه . د خوارانو او بېوزلو له حال احوال څخه به یې ځان خبراوه. تر هغې به کرار نه کښېناست چې د حاجتمنو حاجتونه به یې پوره کړي نه وو .

د حضرت عمر رضی الله عنه په زمانه کې یو کال سخته قحطي راغله . د خوراک شیان نه پیدا کېدل . هغوی چې دا حال ولېد نو وعده یې وکړه چې تر څو ټولو خلکو ته د خوراک شیان نه وي رسېدلي ، تر هغې به دی هم دا شیان نه خوري .



څه موده وروسته ، یوه سهي بازار ته شیدي او غوړي راوړل .
د حضرت عمر رضی الله عنه نوکر ، هغه واخیستل . د خلیفه کور ته یې
ور وړل . حضرت عمر رضی الله عنه ته یې وویل چې ستاسو وعده
پوره شوه . بازار ته شیدې او غوړي راورسېدل او هغه ټول ما واخیستل.

حضرت عمر رضی الله عنه ورته وفرمایل : " زما وعده دا نه وه چې
بازار ته دې دا شیان راشي او ټول دې زه واخلم . زه غواړم چې ټولو
خلکو ته دا شیان ورسېږي . تا چې دا هر څه زما له پاره واخیستل نو
خلک به څه کوي ؟ ولاړ شه او دا پر خلکو وویشه ." نوکر ولاړ او هغه
شیان یې ، ټول ، پر خلکو وویشل .

دا وه داسلام د سپېڅلي دین د مشرانو د ژوند یوه نمونه . هر مشر
ته په کار دي چې په دې ډول عمل وکړي . پر ځان د خپلو کشرانو باور
پیدا کړي او د خپلو خلکو رښتینی خدمتګار شي .



# د اوبو ژرنده

پـه نهـر گـرځـي ، د اوبـو ژرنـده
د اوبــو ژرنـــده ، داوړو ژرنـــده

نـــه غـلـې کېــږي ، او نـــه دربــږي
نـه دمــه غــواړي ، نـــه ستړې کېـږي

بوجــۍ پــرتې دي ، کــتار کــتار
اوړه راولـــــي ،انـــبار انـــبار

ډېـــر انســانان بـــه ، پـــه دې مړېـــږي
کـــلي ،کورونــــه ، پـــرې آباد بـــږي

وربځ وي که خوپ وي ، او که سيلۍ وي
بـــاد او بـــاران وي ، او کـــه ږلــۍ وي

دا نـــه دربـــږي ، نـــه غـلـې كېـــږي
نـه دمــه غــواړي ، نـــه ستړې کېـــږي

د وطـن داسـې خدمـــت پـــه كـــار دى
داسـې اخلاص او همت پـه كـار دى .


دژرندې دننه
۱
۲
۳
۴
۵
۶
ډاله
پل
بوجۍ
لپکۍ
پارو
اوړه


دژرندې دننه
دژرندې لاندې
۱
۲
څرخ
دژرندې ناوه

# خوشال خان خټک

خوشـال خان خټک د پښتو لوی شاعر ، لیکوال او د پښتنو مشر و .
دی د پېښـور لـه نوښـار څخـه لـس کیلومـتره لـرې ، لمر خاته ته ، په یوه
کـلي کې چې اکوړه خټک نومیږي زېږېدلی و . اکوړه خټک د هغه غور
نیکـه اکوړ خـان آباد کړی و . د پېدایښت کـال یې د پښتنو پوهـانو په
فکر ۱۰۲۲ قمري هجري دی .

دخوشـال خـان خټـک پـلار شهباز خـان دخپـلې قبیـلې مشر و . مغل
پاچا شاه جهان دی د خپلې سیمې منصبدار مقرر کړی و .

د پـلار تـر وفـات وروسـته ، خوشال خان خټک د خپـل قوم مشر شو .
شـاه جهـان پاچا د ده د پلار منصب ده ته ورکړ . خو چې شاه جهان وفات
شـو او اورنگزېب پر تخت کېناست نو د دښمنانو په لسمون یې خوشال
خـان خټـک ډیـلي تـه وغوښـت او هلـته یې بـندي کـړ . څـه مـوده پـس ،
د خټکو د مشرانو په کوشش ، د اورنگزېب لـه بند څخه را خلاص شو
او خپـل وطن ته راغی . نور نو د خوشال خان خټک زړه له مغلو څخه تور
شـوی و . منصـبداري یې پرېښوده . د ده او د مغـلو تـر مـنځ اوبـه خـړې
شـوې . خـبره یـې جـنگ تـه ورسـېده . ډېـر جـنگونه یـې سـره وکـړل .

چې زما په کور کې ناست یې ؟ " په دې شوراو زوږ یې مور له کوټې څخه راووته . خاوند یې وپېژاند او زوی ته یې وویل : " دا دې پلار دی .

" د ربیعه پلار د ربیعه له مور څخه پوښتنه وکړه : " کومه روپۍ درسره پاتې ده او که نه ؟ " هغې ورته وویل : " لږ په آرام شه ، ټولې امانتې پرتې دي . "

د لمانځه وخت شو. پلار او زوی ، دواړه ، جومات ته ولاړل . تر لمانځه وروسته، خلکو له ربیعه څخه د دین په باره کې پوښتنې پیل کړې . پلار یې چې دا حال لیده ، له خوشالۍ څخه من من غټېده . بېرته چې کور ته ولاړ ، ښځې ته یې وویل : " داټول ستا کمال دی ." ښځې یې ورته وویل : " ما ټول دولت د ربیعه په تعلیم او تربیه لګولی دی . " خاوند یې ورته وویل : " اصلي دولت خو همدغه علم دی چې نه خلاصېده لري او نه یې څوك پټولای شي . او چې څومره یې لګوې هغومره زیاتېږي . "

خوشال خان ختک په ډېرو جنگونو کې برى ومونډ. خو د کورنۍ بې اتفاقۍ له کبله يې زړه مات شو . له خپلې سيمې څخه تيرا ته ولاړ او په ۱۱۰۰ قمري هجري کال وفات شو .

خوشال خان ختک ډېر کتابونه ليکلي دي. "فضلنامه" يې د فقهي مسألو يو مشهور کتاب دى چې په پښتو ژبه يې نظم کړى دى.

خوشال خان ختک ډېر ښه شعرونه ويلي دي . د ده دشعرونو په باره کې پوهانو ډېر کتابونه ليکلي دي.

خوشحال بابا په خپل کلام کې قوم ته د آزادۍ ، زړه ورتيا او قربانۍ درس ورکړى دى . دوى د قلم او تورې په وسيله د خپل قوم ډېر زيات خدمت کړى دى .

# د خوشال بابا مرغلرې

د خوشـال بابـا خـبرې مرغـلرې دي. دی وايـي، هغـه خـلک نـاپوه دي چې :

- د دښمن په لوړه باور کوي .
- په سپينه ږيره د ځوانۍ خوبونهويني .
- دمشرانو خبرې نه مني او په خپلو کې جګـړې کوي .
- د جنګ ميدان ته وځي ، خو په متو کمزوری وي .
- په کاليو ، ماڼيو او نسب باندې فخر کوي .

خوشال بابا دا هم وايي چې څوک توريالی وي ، باتې نه وهي .

# لنډۍ

سرې په رنګ نه سرې کېږي

سرې هغه دي چې يې خوی د سړو وينه.

ما چې د ستا ياري کوله

ما وې چې خوی به دې د رنګ په شانې وينه.

ارمان ارمان تېره ساعته

بيابه رانه شې که ملنګ درپسې شمه.

سپرلی به بيا په وطن راشي

نجونې به وټومبي په زلفو کې ګلونه.

مسافرۍ مې زړه نرې کړ

چې خپل وطن رايادوم ژړا راځينه.

ماته له خپله ځانه ګرانه

افغانستانه، ژړوي مې ستا يادونه.

# لغتونه / عبارتوَنه او معناګانې

[ا]

امان : امن ، بې وېرې کېدل، له شر او خطر څخه خلاصېدل
انګړ : غولی، حوېلی
امانتې : څه شی چې له چا سره ساتلی وي او بېرته ورکول کېږي
انصاف : عدل، برابري
اړو : محتاجو
اغېزه : تاثیر، اثر
آس ته پوندہ ورکړه: آس يې وځغلاوه
اراده : نیت، تکل
اثر : اغېز، تاثیر
ابوبکر صدیق : د اسلام د لومړي خلیفه لقب دی.
ایمان : باور، غیرت، نارینتوب، شجاعت
اصحاب : د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم ملګري / دوستان
ایسار : منع
اولاد : لوڼې، زامن، لمسي، کړوسي او ...
ایرانیانو : د ایران خلکو
اغېړ : بدهضمي
اُحد : په عربستان کې د یوه غره نوم دی چې د نبي کریم صلی الله علیه وسلم مشهوره غزا (د اُحد غزا) هم هلته شوې ده.
اړتیا : ضرورت، احتیاج
احتیاط : پام
اونۍ : هفته
امام : پېشوا، لارښود
انعام : نعمت، بخشش، پېرزوینه
اجر : مزدوري، بدله
امتیان : پیروان، د حضرت محمد صلی الله علیه وسلم پر لاره تلونکي

آخر زمان : آخري، د وروستۍ زمانې
ارمان : هیله، ارزو، غوښتنه
ابو حنیفه : د امام صاحب رحمه الله علیه (نعمان بن ثابت) لقب دی.
ایران : د افغانستان لمر پرېواته خواته ګاونډۍ هېواد
امر : حکم، فرمان
اصلي حالت : لومړنی حالت، اساسي حالت
اېشول : جوش ورکول
افغانۍ : د افغانستان روپۍ
اسد : زمری، د شمسي هجري کال پنځمه میاشت
احسان : نېکي، ښېګڼه
انبار انبار : دلۍ دلۍ، کوټ کوټ
اخلاص : صفايي، پاکوالی، بې ریايي
اوبه خړې شوې : اړیکي خراب شول، سره خفه شول

[ب]

بریالی : کامیاب
بېوزلو : خوارانو
بادار : څښتن، خاوند
بیه : قیمت، ارزښت
بېدار : ویښ
بځرکي : میده ګي، د شیانو وړې وړې برخې
بخت : طالع
بي بي : د پاک لمنو ښځو لقب دی
بنیادم : بني آدم، د آدم اولاد یا زوی لور، لمسی، کړوسی،...
برسېرنې : سرسري، شکلي
بې سېکه : بې تابه، بې طاقته
بنیرې : مچان چې په څه شي د پاسه ګرځي او بنګ بنګ کوي
بڼ : باغ
بې مثله : بې ساري، بې نمونې
بل مشال : لګېدلی مشال، روښانه مشال
بهتره : ډېره ښه، ډېره ښه
بندیخانه : زندان، جېل

بوډۍ : زړه ښځه
بغداد : د عراق پایتخت دی.
بولي : ګني، وایي
بخیل : خسیس، ممسک، چې چاته څه شی نه ورکوي
بې کبره : عاجز، چې لویي نه کوي، چې کبر نه کوي
بیت المال : د دولت یا حکومت خزانه
باجرې : لکه دسپینو جوارو یو ډول بوټی دی
بدل : عوض
بیړې : تلوار، وارخطایي
بشریت : انسانیت، انسانولي
باور : اعتبار، اعتماد، ایمان
بری : کامیابي، بریالیتوب
بې اتفاقي : ځانځانۍ
باټې : لاپې شاپې، غټې غټې خبرې

**[پ]**

پوی : پوه
پوځ : عسکر، سپاهیان
پور : قرض
پوروړیو : قرضدارو
پایتخت : د مملکت مرکز
پېچش : د ګېډې یا معدې درد، اسهال
پوښاک : کالي، جامې، د اغوستلو شیان
په شړپ شړپ وخښله : داسې وځښله چې د شړپا آواز یې اورېدل کېده
پرزه : وړه ټوټه
پاخه عقل : پوخ عقل، پخه هوښیاري
پرهېزګار : متقي، له ګناهونو څخه ځان ساتونکی
پیرانو پیر : د شیخ عبدالقادر جیلاني لقب
پنجره : قفس، کړکۍ
پېښه : واقعه
پړی : رسۍ
پرېمانه : ډېر

| | |
|---|---|
| پنډوله | : راټولوله، راغونډوله |
| پیوستون | : یوځای کېدل، ترون |
| پل | : د ژرندې ډبره، قدم |
| پارو | : د اوړو رشپېلک یا رشپېل |
| پېښور | : د پښتنو زوړ تاریخي ښار |
| پوهانو | : عالمانو |
| په شانې | : غوندې |

[ت]

| | |
|---|---|
| تعلیم | : ښوونه |
| تربیه | : روزنه |
| تعلیم او تربیه | : ښوونه او روزنه |
| تنفس | : ساه اخیستل، ساه ایستل |
| تلغ | : هوار |
| ترانه | : سرود ، نغمه |
| توګه | : ډول، طریقه |
| تنګسه | : زحمت، سختي، تکلیف |
| تالاشي | : د کورونو یا جېبونو لټول |
| تکلیف | : زحمت، تنګسه |
| توبه | : پښېماني، بېزاري، له ګناه لاس اخیستل |
| تعالی | : ډېر لوړ، د لوړې مرتبې خاوند |
| تیرا | : په وزیرستان کې یوځای دی. |

[ټ]

| | |
|---|---|
| ټولګیوال | : همصنفي |
| ټك | : هغه آواز چې د بدن له بندونو وځي، هغه آواز چې د دوو شیانو له لګېدلو څخه پیدا کېږي |
| ټپیانو | : زخمیانو |
| ټاکلي | : انتخاب شوي، مقرر شوي |
| ټومبي | : لګوي، منډي |

[ث]

| | |
|---|---|
| ثواب | : اجر |

**[ج]**

جونگړې : کورونه

جل جلاله : لويه ده لويي د هغه

جراثيم : مکروبونه

جاري : روان

ججوری : جاغور، مری

جيلاني : د شيخ عبدالقادر رحمه الله عليه لقب

**[چ]**

چمنونه : هغه مځکه چې کبلو پوښلې وي

چغی : کړې، د سپي د شړلو کلمه يا آواز

چاپېر : شاوخوا

چغندر : لبلبو؛ يو ډول بوټی دی چې بوره ځنې جوړېږي.

**[څ]**

څنګ په څنګ : خوا په خوا

څنګه يې پېښنه راکړې ده : څنګه راغلی دی

څپر : لـه بنجبنو جوړه شوې وسيله چې غنم وريانډې ميده کوي يا د سيوري له پاره ترې کار اخيستل کېږي .

څرخ : هغه شی چې ځای په ځای ګرد ګرځي

**[ح]**

حديث : د پيغمبر وينا، خبرې

حاصل : مېوه

حضرت : نږدې، حضور، داحترام کلمه ده .

حکم : امر، فرمان

حاجت : ضرورت، اړتيا

حيران : هک پک

حفاظت : ساتنه

حد : بريد، اندازه

حقمل : د حق ملګری؛ دلته د شاعر دوهم نوم دی.

حاجتمنو : محتاجو، اړو

**[خ]**

خراسان : د افغانستان پخوانی نوم دی، مشرق
خلیفه : قایمقام، جانشین، نایب
خادم : خدمتگار
خلافت : جانشیني، نیابت، د چاپه ځای د هغه کارونه کول
خواران : عاجزان، غریبان
خچن : خیرن، ناولی
خځلې : د ونو بوټو ډېرې ورې ورې ټوټې
خونو : کوټو
خوندي : محفوظ، ساتلی

خواشینی : خفه، پرېشان
خاوند : څښتن، مالک
خواخوږي : همدردي، دلسوزي
خزان : منی، د ونو بوټو پاڼې ژېړېدل او رژېدل
خوپ : گرد، غبار، بخار، وربخ چې راښکته شي او مځکه پټه کړي
خوی : عادت

**[ د ]**

دعا : بلل، بلنه
دولت : شتمني، حکومت
د سترگو په رپ کې : ډېر ژر
رنگ ژېړ وتښتېد : وارخطا شو
درجه : مرتبه، رتبه
دعاگوی : دعا کوونکی، خیرخواه
درملو : دارو، دوا
دوان : په منډه، ځغلېدونکی
دیندار : د دین خاوند
د برخې خاوند : بزرگ، ولي، د کرامت خاوند
دماغ : ذهن
دلاسا : خوشاله، خوښ
درمند : د کرنې د پیداوارو کوټ یا ډېری

دلۍ دلۍ : انبار انبار

د خوشال زړه له مغلو څخه تور شوی و : د خوشال زړه له مغلو بد شوی و؛ خوشال له مغلو خفه شوی و.

د فقهي مسالو : د شرعي سوالونو، د ديني سوالونو

د ځوانۍ خوبونه : د بې پروايۍ خوبونه

[ ډ ]

ډاډگيرنه : تسل، اطمينان، ډاډ

ډالۍ : تحفه، سوغات

ډينگ : يو ډول مرغه دی چې جگې جگې پښې اوږده غاړه او اوږده مښوکه لري.

ډې ډې تې : د خزنده وو او ماشو ضد دوا

ډاله : د ژرندې هغه ځای چې دانه (غنم، جوار، ...) ورباندې اچوي او لږ لږ ترې لاندې پل ته ورلوېږي.

[ ذ ]

ذره بين : هغه وسيله چې واړه واړه شيان ورباندې ليدل کېږي

ذوالجلال : د لويۍ خاوند

ذهن : دماغ، عقل، ماغزه

[ ر ]

روزنه : تربيه

رضی الله عنه : الله دې له هغه راضي وي.

رضی الله عنها : الله دې له هغې راضي وي.

رسول الله : د الله رسول

صلی الله عليه وسلم : د الله درود او سلام دې وي ورباندې

راهيسې : راپه دې خوا

رښتينی : صادق

روميان : د روم خلک؛ باتينگر

روزگار : کار، زمانه

رېږدوونکې : لړزوونکي

رحمه الله عليه : د الله رحمت دې وي ورباندې

روزي : خواره، نصيب

روږدی : عادت

# ايمانداره نجلۍ

حضرت عمر رضی الله عنه د رسول الله صلی الله علیه وسلم دوهم خلیفه و. دی د نېکۍ، انصاف او پرهېزگارۍ ډېرې خوندورې کیسې لري.

د حضرت عمر رضی الله عنه عادت و چې د شپې به د مدینې منورې په کوڅو کې گرځېده. د خلکو حال احوال به یې اخیست. د اړو او غریبو په حال چې به وپوهېده، مرسته به یې ورسره کوله.

یوه شپه، له خپل عادت سره سم، د مدینې منورې په کوڅو کې گرځېده. له یوې جونگړې څخه یې د یوې ښځې آواز تر غوږ شو. ودرېد او د هغې خبرو ته یې غوږ ونیو. ښځې خپلې لور ته ویل: " په شېدو کې لږ اوبه گډې کړه چې زیاتې شي او ډېرې پیسې پرې



## [ ز ]

زوږ : شور، غلغله
زکام : رېزش
زهرجن : زهري، زهر لرونکی
زېړی : د ځیگر یو ډول ناروغي ده چې ځرمن ورسره ژېړېږي
زیار : زحمت
زگېروی : د ناروغ فریاد، هغه فریاد چې له ساه ایستلو سره له خولې وځي
زړه مات شو : خفه شو، خوابدی شو
زلفو : د سر اوږدو ځوړندو وېښتو
... زړه نری کړ : ... زړه نازک کړ

## [ ژ ]

ژغورل : خلاصول، نجات ورکول

## [ س ]

ستونزه : مشکل، رېړه، سختي
سپاهي : عسکر
سوکالي : آرامي، هوسایي
سیال : رقیب، له چاسره برابر
سره غرمه : ټکنه غرمه، ډېره گرمي
سخي : بښونکی
سوداگري : تجارت
ساري : انتقالېدونکي، لېږدېدونکي؛ مثالونه
سره لړې : لړزه، رېږدېدا
سوتره : صفا، پاک
سیلۍ : توند باد
سخاوت : بښنه
سېکه : طاقت، تاب، وس
سمدلاسه : له واره، سمدستي
سپموي : نه ورکوي، له ځان سره ساتي، بخل کوي
سوالگر : چې خیرات غواړي

سرطان : چنگاښ، یو ډول وژونکې ناروغي ده، د لمریز هجري کال څلورمه میاشت
سنګترې : کینو، مالټې ته ورته مېوه ده.
سپېڅلی : پاک، مقدس
سیمې : علاقې، منطقې، ځایونه

[ ش ]

شریف : د شرافت خاوند، د عزت خاوند
شتمن : بډای، دولتمند
شام : د سوریې او عراق پخوانی نوم، یو عربي هېواد دی
شرپ : د اوبو د تلولو آواز
شکر : د چا د ښېګنې ستاینه
شیخ : لوی، زوړ، عالم، مشر
شوق : ذوق، اشتها
شته : مال، دولت، دارایي
شېبه : لحظه، د وخت ډېره کمه برخه
شړۍ : شال، له وړیو جوړ څادر
شړشم : یو ډول بوټی دی چې ژېړ ګل لري او له دانو یې غوړي باسي
شپون : چې کډې بزې څروي
شعار : د یوې ډلې خلکو د پېژندګلوۍ مخصوصه نښه او آواز
شرافت : لویي، بزرګي
شاعر : چې شعر وایي / لیکي / جوړوي
شعرونه : موزونې ویناګانې، منظومې ویناګانې

[ ښ ]

ښوونه او روزنه : تعلیم او تربیه
ښېګنه : نېکي، احسان

[ ص ]

صاحبه : ملګریه، دوسته
صدیق : رښتینی
صفایي : پاکي، سوتره کي
صحبت : خبرې اترې، مجلس

صفا : پاک، سوتره
صحت : روغتیا، تندرستي
صبر : حوصله، وار، زغم، وارخطايي نه کول
صداقت : رښتینولي

[ ض ]

ضرورت : احتیاج، حاجت

[ ط ]

طاقت : قوت، تاب

[ ظ ]

ظلم : تېری، زور زیاتی

[ ع ]

علم : پوهه
عقل : هوښیاري
علاج : درملنه، دارو کول
عالم : پوه، د علم خاوند
عقبا : اخرت
عبادت : بنده گي
عراق : د یوه عربي هېواد نوم دی
عمل : کار
علیه السلام : پر ده دې سلام وي، سلام دې ورباندې وي
عجیبه : حیرانوونکې
عذاب : درد، شکنجه
عزت : قدر، احترام،درناوی
عاجز : بېوزله، بې کبره
عدل : انصاف، برابری

[ غ ]

غصه : قهر، غم
غزا : د کفارو په ضد جنگ

| | |
| --- | --- |
| غوره | : منلی، خوښ |
| غښتلی | : قوي |
| غلیمانو | : دښمنانو |
| غوماشه | : ماشه / ماشی |
| غلام | : مریی، نوکر |
| غالب | : زورور، زیات غښتلی |
| غوث الاعظم | : د شیخ عبدالقادر جیلاني رحمه الله علیه لقب دی |
| غولی | : انګړ، حوېلۍ |
| غورنیکه | : د پلار نیکه |

[ ف ]

| | |
| --- | --- |
| فقه | : د قرآن او حدیث علم، د دین علم |
| فرق | : تفاوت، جدایي |
| فتح | : سوبه، کامیابي، پرانیستل |
| فراق | : بېلتون، جدایي |
| فرعون | : د موسی علیه السلام غټ مخالف چې د [ربولۍ] دعوه یې لرله، سر غړوونکی، ظالم، د پخوانیو مصري پاچایانو لقب |
| فاروق | : (د حق او باطل) فرق کوونکی؛ بېلوونکی |
| فرمایلي | : حکم کړی، امر کړی |
| فاضل | : د فضل خاوند، هوښیار، بهتر |
| فخر | : ویاړ، په ښه کار خوشالي کول |

[ ق ]

| | |
| --- | --- |
| قیامت | : محشر، اخرت |
| قبضه | : نیول، تسلط |
| قربانۍ | : سرښندنې، سر او مال جارولو |
| قیمت | : ارزښت، بیه |
| قادر | : د قدرت خاوند، د وس خاوند |
| قاضي | : قضاوت کوونکی، د حق او باطل بېلوونکی |
| قمري هجري کال | : هغه کال چې د رسول الله صلی الله علیه وسلم د هجرت له وخت څخه د سپوږمۍ په حساب پیل شوی |
| قافله | : کاروان، کتار |

قدر : عزت، اندازه

قحطي : چې د خوړو شيان نه پيدا کېږي، چې وچکالي وي، چې باران نه کېږي

قبيلې : د يوه پلار اولاده، طايفې، پلارگنې

قوم : يوه ډله خلک چې ګډې ريښې او صفتونه لري، د يوه نسل خلک

[ ک ]

کمال : تمام کېدل، بشپړېدل، په ټولو صفتونو ښکلی شوی، هنر، فن

کنډول : ختين جام

کوفه : د عراق يو ښار دی

کونډه : هغه ښځه چې خاوند يې مړ شوی وي

کړاو : زحمت، تکليف

کبرجن : مغرور، چې ځان لوی کښي

کټو : د پخلي لوښی

کر : کرل، کرنه

کلام : وينا، شعر

[ گ ]

گومان : خيال، وهم، فکر، چې په يقين سره نه وي

گواکې : گويا، لکه چې

گنده : خوسا، ناولی

گړندی : چټکه، تېزه

گران : مشکل، سخت؛ خوږ، عزيز

گانی : ساده فابريکه؛ د تېلو، گوړې يا... جوړولو وړه کارخانه

[ ل ]

لقب : بې له اصلي نوم څخه په يوه بل نوم مشهورېدل

له کبله : له امله، له وجهې، له سببه

لايق : وړ، قابل

لوړ : جگ، اعلی، عالي

لوی ځوان : د شيخ عبدالقادر رحمه الله عليه لقب

لوړې زده کړې : لوړ تعليم، جگ تعليم

لوټ : تالان، تالا

للون : خېشاوه، له کښت څخه هرزه او ناکاره بوټي ایستل
لوخړو : لوګیو، دودونو
لېکی : دژرندې هغه برخه چې دانه (غنم، جوار،...) لږ لږ پل ته ورغورځوي
لیکوال : لیکونکی، چې مضمون، مقاله یا نور څه لیکي
لمرخاته : شرق، ختیځ، د لمرخاته لوری
لمسون : پارول، پارونه
لوړه : جګه، ژمنه، وعده، سوګند
لنډۍ : ټپه، مسره، هغه شعر چې لومړۍ مسره یې ۹ او دوهمه یې ۱۳ سپلابه وي.

[ م ]

مدعا : مقصد، مطلب
مولا : بادار، خاوند
منظرې : د لیدلو وړ ځایونه
مدینه : ښار؛ د عربستان یو ښار چې رسول الله ورته هجرت کړی
منوره : روښانه شوې
من من غتېده : ډېر زیات خوشالېده
مختورن : مختوری
مدرسې : مکتبونه؛ د زده کړې ځایونه
ململ : نرۍ ټوکر لکه جالۍ
ملاریا : یو ډول ساري ناروغي ده
مالیه : د مال یوه برخه چې حکومت ته ورکول کېږي
مسافر : څوک چې په سفر کې وي، څوک چې له کور څخه لرې ولاړشي
معاف : رخصت، ببښل شوی
مدام : همېشه
مشهور : نومیالی
مریانو : غلامانو
مکه : د عربستان یو ښار چې رسول الله صلی الله علیه وسلم په کې پیدا شوی او کعبه شریفه هم په کې ده
معظمه : د عظمت او لويي خاونده
مرستې : کومکونه
مکروبونه : جراثیم، دناروغۍ واړه واړه انتقالوونکي حیوانات
مورۍ : د اوبو یا هوا وتلو سوری یا لاره

متلونه : مثالونه، هغه وينا چې خلک يې د دليل په توګه کاروي
مل : ملګرى
مرتبان : ښيښه يي لوښى
ماشين : د کار کولو تخنيکي وسيله
معده : ګېډه
مالک : خاوند ، څښتن
معتبر : با اعتباره، باوري
ملا وتړله : پلوى يې وکړ، طرفداري يې وکړه
مجيد : لوى، ګران، لوړ مرتبه
مزل : لاره لنډول، سفر کول، لاره وهل
معامله : کار، چار
مېوه داري : مېوه لرونکي
موسم : فصل، آب وهوا
معارف : ښوونه او روزنه
محبت : مينه، دوستي
مغل : د تاتار قوم چې ډېره موده يې زموږ په سيمه حکومت کړی
مقرر : ټاکلى
منصب : رسمي وظيفه، رتبه، مقام
مرغلري : يو ډول قيمتي کاڼي دي چې د سمندرونو له تل څخه ترلاسه کېږي او د صدفونو له خېټو يې راباسي.
ملنګ : فقير

[ ن ]

ناولي : ګنده، چټل، نامينځلي
نعمتونه : د خدای تعالى لورولي شيان، احسان، نېکي، روزي، خوښي، مال، دولت
نظر : فکر، خيال، عقيده، ليد
نبوي مسجد : په مدينه منوره کې د رسول الله صلى الله عليه وسلم له خوا جوړ شوی لومړی جومات
نکاح : تړل، واده کول، ښځه کول
نوشېروان : دفارس پاچا چې په عدالت شهرت لري
نيت : اراده
نبوت : پيغمبري
نرى رنځ : سل، تبرکلوز
نس ناستى : اسهال

نزله : نیم سری، چې یوې ډډې ته سر خوږېږي
نس خوږی : د ګېډې درد

[ و ]

وقف : خیرات، بخشش، درېدل
وفات : مرګ، مړ کېدل
ودان : آباد
وبا : کولرا، یو ډول ساري ناروغي ده
وده : نمو، غټېدل، لويېدل
والګی : زکام، رېزش
واکدار : واکمن، د واک خاوند
وړ : لايق، قابل
ورمات شول : ډلې ډلې ورغلل
وژغورل : نجات ورکړ، خلاص کړل
وغوړېږي : هوار شي، ګل شي
وعده : لوړه، ژمنه
وېومبي : کېږدي، ولګوي

[ هـ ]

هېواد : وطن
هوسۍ : آهو، يو ډول وحشي ځناور چې د وزې غوندې دی او خلک يې ښکار کوي
هجرت : جدايي، بېلتون، له ناروا وو ځان ساتل، له مکې څخه مدينې ته د پېغمبر صلی الله عليه وسلم لېږدېدل
همت : قصد، نيت، اراده، عزم
هستوګنې : اوسېدنې
هضم : خواړه حل کول
هرو مرو : خامخا
هجري : هجرت ته منسوب، چې په هجرت پورې اړه لري

[ ی ]

يرغلونه : حملې، بريدونه
يادونه : خاطرې

# د وطن ترانه

دا وطن، دا ښکلی زیبا وطن، دا وطن زما وطن، دا مې د بابا وطن
دا رابانـدې ګران دی
دا افغانستان دی
دا افغانستان دی

دا خاوره ټاټوبی د غازیانو د غوریانو دی
فخر د سوریانو دی
دلته غوړېدلی عالي دور د لودیانو دی
فخر د سوریانو دی
دلته رپېدلی لوړ بیرغ د غزنویانو دی
فخر د سوریانو دی
بیټ نیکه، فولاد، کروړ دې بهل بهل ثنا خوان دی
دا افغانستان دی
دا افغانستان دی

ګران افغانستانه څه ملت چې د افغان یو
ټول درنه قربان یو
نر او ښځې واړه ستا د شمعې پتنګان یو
ټول درنه قربان یو
بیا ستا ترقۍ ته موتی شوي زوړ او ځوان یو
ټول درنه قربان یو
ډېره ترقۍ دې د سېلاب د زړه ارمان دی
دا افغانستان دی
دا افغانستان دی

وگـتیو؛ ژوند به مو پرې بنه شي . "

لور یې ورته وویل : " مورې ، زه خو دا کار نه کوم . خلیفه حکم کړی چې هېڅوک دې په شېدو کې اوبه نه گـډوي . "

مور یې وویل : " لورې ، دلته څوک دي چې موږ به ویني . نه خلیفه شته او نه یې کوم سپاهي . لږ اوبه ور واچوه ؛ هېڅ نه کېږي . "

لور یې وویل : " مورې ، خبره خو دې سمه ده چې دلته خلیفه نشته خو حکم منل یې ضروري دي . که خلیفه نشته نو خدای پاک خو شته . خدای جل جلاله ته به مختورن یو . هغه ته به څه ځواب وایو . "

حضرت عمر رضي الله عنه چې دا خبرې واورېدې. خپل کور ته ولاړ. چې سهار شو ، نجلۍ یې په احترام سره راوغوښته او د هغې له ایمانداری څخه یې ډېره خوښي ښکاره کړه .

له دې کبله چې د دې نجلۍ ایمانداری په حضرت عمر رضی الله عنه باندې ډېره اغېزه کړې وه نو خپل زوی، عاصم، ته یې په نکاح کړه.



هلته ورور ولي زمونږ | هلته خوشالي زمونږ
ملک پرې آباديږي تول | هلته سوکالي زمونږ
سيال به دسيالانو شو | هلته ده سيالي زمونږ
پورته چې ختلي دي | زمونږ غوندې قامونه دي

ځئ چې مدرسې ته ځو
ځئ چې مدرسې ته ځو

هلته چې څوک تللي دي | ښه اوچت ختلي دي
نوم يې په دنيا کې خپور | هر څه يې گټلې دي
څوک چې ورنه پاتې دي | زړه باندې داغلي دي
هلته د هر چا پوره | ډېر ډېر ارمانونه دي

ځئ چې مدرسې ته ځو
ځئ چې مدرسې ته ځو.





# روغ نیت

نوشېروان پاچا له خپلو ملګرو سره په ښکار وتلی و . تړوله ورځ یې په ځنګلونو کې په هوسیو پسې اسونه ځغلول . وایي چې په یوې هوسۍ پسې یې آس ته پونده ورکړه . ډېر لرې ولاړ . چې بېرته راوګرځېد، لار ترې ورکه شوه . یوه خوا او بله خوا وارخطا وګرځېد. خو ملګري یې نه معلومېدل. سره غرمه شوه . د ګرمۍ موسم و تندې واخیست . په دې وخت کې یو باغ په نظر ورغی . آس ته یې پونده ورکړه او د سترګو په رپ کې ور ورسېد . باغوان ورته راغی . پوښتنه یې ترې وکړه : " څه دربانديې شوي دي؟ " پاچا په کمزوري آواز وویل : " اوبه . "

باغوان په منډه ولاړ اوله نژدې ونې څخه یې یو انار را وشکاوه . مات یې کړ . د انار دانې یې د ململ په دستمال کې واچولې او له یوه پاک ګیلاس سره یو ځای یې د پاچا په مخکې کېښودلې . پاچا انار په ګیلاس کې وزبېښنه . ګیلاس د انار له شربت څخه ډک شو . په ډېره مینه یې وڅښنه. چې تنده یې ماته شوه نو له باغوان څخه یې پوښتنه وکړه: " د دې باغ مالیه څومره ده؟ " باغوان ورته وویل: " صاحبه،

gtz
BEFARe

# پښتو

## د دريم ټولګي له پاره



بيفير

د افغان مهاجرو له پاره اساسي زده کړې

gtz
BEFARe



# پښتو

## د دریم ټولګي له پاره




بـــيفـــيـــر

د افغان مهاجرو له پاره اساسي زده کړې

**Title of the Book:**

Pashto, Grade III

(Revised Version)

**Editorial Board:**

Nurul Habib Nisar

Assit. Prof. M. Nasim Qasimi

**Artist:**

Rajab Ali Hunarkhwah

**Composer:**

Noor Mohammad Noor

**Publisher:**

GTZ-BEFARe

Production & Publication Section

**No. of Copies: 39,000**

First Edition, December, 2001

Second Edition, February, 2003

د کتاب نوم :

پښتو، د دريم ټولګي له پاره

(تجديد نظر شوې نسخه)

کتونکې ډله :

نورالحبيب نثار

پوهنيار محمد نسيم قسيمي

رسام :

رجب علي هنرخواه

کمپوزر :

نورمحمد نور

خپروونکی:

جی. تی. زيد. - بيفير

د تأليف او خپرونو څانګه

تيراژ : ۳۹۰۰۰

لومړی چاپ، قوس، ۱۳۸۰

دوهم چاپ، دلو، ۱۳۸۱

# فهرست

